


# الله تعالی چیرته دی ؟

د هغو پوښتنو مختصر ځوابونه چې مبتدعین یې د الله تعالی په هکله له ځانه جوړوي

او د جهمیه او معتزله ډلو په څیر یې په امت کې خپروی .

لیکنه :

فضیلة الشیخ أبو عمر عبدالعزیز النورستاني حفظه الله

مدیر الجامعة الأثریة انقلاب روډ څمکنو پیښور پاکستان

کمپوز :

مصطفی خان سلفي

خپرنیون :

أهل الحدیث خپرندویه اداره



**الحمد لله الذي سمى نفسه في القرآن بأسماء ، مثل الرحمن و الودود و العزيز و الجبار والعليم والقدير والرؤوف والرحيم ، وقال ( ادعوا الله أو ادعوا الرحمن أيا ما تدعوا فله الأسماء الحسنى ) نعلم معناها ونفهم ، وصبيان المسلمين بل وكل عاقل يفهم ، والصلاة والسلام على أفصح العرب الذي جعله الله شارحا لكتابه ، المنزل ولم يمتنع عن تفسير آية من كتاب الله وقال هذه من المتشابه الذي لا يعلم معناه ولا قال قط أحد من سلف الأمة و لا من الأئمة المتبعين أن في القرآن آيات لا يعلم معناها و لا يفهمها رسول الله صلى الله عليه وسلم ولا أهل العلم و الايمان جميعهم ، و لا نعلم أحدا من سلف الأمة ولا من الأئمة جعلوا أسماء الله تعالى وصفاته بمنزلة الكلام الأعجمي الذي لا يفهم و لا قالوا أن الله تعالى يتزل كلاما لا يفهم أحد معناه و انما قالوا كلمات لها معان صحيحة بل هو كان فصيحا علم معنى العلو ، و السماء والرفع والفوق والأين والمكان ، فاقدروا قدره .**

و على آله و صحبه والتابعين وسائر الأمة الذين قد تكلموا في جميع نصوص القرآن آيات الصفات و غيرها وفسروها بما لا يوافق دلالتها و أقروا أن الله تعالى فوق العرش حقيقة و أن ذاته فوق ذات العرش لا ينكرون معنى الاستواء و لايرون هذا من المتشابه الذي لا يعلم معنا بالكلية ، **أما بعد** :

مسلمانان د اسلام له شروع نه په دې عقيده دي چې الله سبحانه وتعالى بره دعرش دپاسه دی ، د مخلوق نه جدا دی ، په دې عقيده د مسلمانانو تربيه شوې ده او پدې پيدا وو او پدې عقيده مړه هم دي ، تر دې چې ماشومانو ، بوډاګانو او لېونو به دا ويل چې الله تعالى بره دی په سر مي ولاړ دی ( **أفمن هو قائم على كل نفس بما كسبت** ) [الرعد ٣٣ ] تر دی چې د هارون الرشيد په زمانه کې د يونانيانو کتابونه عربۍ ته ترجمه شو نو خلکو د قران کريم اياتو د صفاتواو معادو وغيره ؤ کې کلام شروع کړو ، مختلف آراء – اهواء – مقالات او مذاهب ډير خواره شو تر دی چې قدريه،معتزله،جهميه او کراميه وغيره مستقلې ډلې او پارټيانې جوړې شوې ، او ددوی د لاسه اشاعره او ماتريديه سخت متاثر شول تر دی چې بعضو د صفات ايتونه بلکل معطل کړل ، چا په متشابهاتو کې واچول ، څوک د تجسيم قائل شول او څوک د تمثيل ، او چا په أين الله سره سوال کول کفر وګڼل ،بعضو داسي وويل چې هغه ايتونه چې د الله د علو او بره والي صفات پکې ذکر دي له دی وچې او يا پدی وجه چې قران کې راغلي نو خير دی او که چا دا عقيده وساتل چې الله تعالى بره په عرش باندې دی نو کافر شو ، ( **سبحانه وتعالى عما يقولون علوا كبيرا** ) تر دې چې بعضې سلفيان چې د رازي،زمخشري او بيضاوي کتابونه مطالعه کوي هغوی هم ورنه متاثره دي تر دی چې کلونه کلونه به صحيح بخاري لولي او نصوص به په حاشيو بدلوي ، يو مثال لکه حديث د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هغه وايي چې : أن يهوديا جاء الى النبي لى الله عليه وسلم فقال : يا محمد ، ان الله يمسك السماوات على اصبع ، والأرضين على اصبع ، والجبال على اصبع ، والشجر على اصبع ، والخلائق على اصبع ، ثم يقول : أنا الملك . فضحك رسول الله صلى عليه وسلم حتى بدت نواجذه ، ثم قرأ : ( **وما قدروا االه حق قدره** ) . [ صحيح البخاري الرقم 7414 ] . د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خندا او د آيت ( وما قدروا الله حق قدره ) لوستلو نه ظاهرا معلوميږي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د يهودي اقرار باندې خوشحاله شو ،

دوى هم د الله تعالى قدرت كامله مني خو بيا هم ايمان نه راوړي ځکه وما قدروا الله حق قدره د يهودي تصديق وکړو چې واقعا الله پاک دغه شيان په خپلو ګوتو کې نيولي دي ، او هم دغه معنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم صاحب النعلين وو ، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته إنک غلام معلم ويلي وو او قديم الاسلام دی حتى چې ابوتميم ورته سادسي الاسلام وايي دغه ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي : (( فضحک رسول الله صلى الله عليه وسلم تعجبا وتصديقا له )) [2/1103] ، ليکن حاشيې والا وايي : ( وضحک النبي صلى الله عليه وسلم انما هو للتعجب من جهل اليهودي، فظن الراوي [ ابن مسعود ] ان ذالک تعجب تصديق و ليس کذالک ) ، اوس د ابن مسعود رضی الله عنه ومنو که د قرطبي ؟ .

او خطابي وايي : ( قول الراوي تصديقا له ظنا منه وحسبان له فليس بشيئ ) ، او د أصابع يا ګوتو د ذکر په باره کې وايي : ( ولعل ذکر الأصابع من تخليط اليهودي فان اليهود مشبهة ) . و الى الله المشتکي ، څومره ظلم دی .او د مکان په باره کې وايي : ( حديث کې دي چې فعلا به الى الجبار فقال وهو مكانه يا رب خفف عنا ) . [ صحيح البخاري – 2/112] .

د حديث صفا او ظاهره معنى داده چې جبريل رسول الله صلى الله عليه وسلم بره کړو جبار ذات ته نو ويويل پداسې حال کې چې الله تعالى په خپل ځای ( مکان ) باندې وي چونکې دا حقيقي معنى وه نو د حاشيې والا وايي : ( ثم أوّلوه مکانه بمکان النبي صلى الله عليه وسلم أي في مقامه الذي قام فيه قبل هبوطه ) حاشيه بخاري 2/1120 انما أشکو بثي وحزني الى الله تعالى .

که دوى ددې حاشيو پر ځای د خپل الله باره کې د فهم نه کار اخيستی نو دی ورطاتو کې به نه پرېوتل ځکه سفيان بن عيينة رحمه الله فرمايي : ( لا تکثروا شرح الحديث فان کثرة شرح الحديث تذهب بهاء الحديث ) پدی تا ويلي ، ما ويلي ، کرماني ويلي ، عقلاني ويلي ، عيني ويلي باندې د حديث رونق ختم او حديث نه هيڅ استفاده ونشي .

بهر حال الله خپل تعارف کوي ( **ان ربکم الله الذي خلق السماوات والأرض في ستة أيام ثم استوى على العرش** ) يعني الله تعالى حقيقتا فوق العرش دی يعني ذات د الله تعالى د عرش دپاسه دی ، نو چونکې ددوی د الله تعالى ددې وينا سره چې ( ثم استوى على العرش ) اتفاق نه وو نو دوی وويل چې که الله مونږ فوق العرش ومنو نو الله سره به مکان او جهت او حيز ثابت شي ، (و الله منزه عن المکان و الجهة و الحيز) نو دوی د الله تعالى د خوښې نه خلاف ځان لپاره دا خوښه کړه چې الله په لا مکان کې دی ، دا ځکه چې دوی د الله تعريف داسي کوي چې ( الله خال عن الجهات الست ) چې نه بره دی نه ښکته ، نه ښي طرف ته دی نه ګس ته ، نه مخکې دی نه شاته ، نه داخل د عالم کې د ی نه خارج د عالم نه ، نه متصل د عالم سره نه منفصل دعالم نه ، نه قريب دی نه بعيد ، نه په جهت کې نه مکان کې ، نه خاوند د مقدار دی نه د صورت ، نه خاوند د نهايت دی ، دا د معدوم تعريف دی ، که ددوی نه د معدوم تعريف طلب کړې نو همدا تعريف به کوي ، دا تعريف دوى ځکه کوي چې دوی د الله تعالى د وجود خارجي نه منکر دي ، صرف د الله وجود مطلق چې وجود ذهني او علمي دی مني ، چونکې عوام پدومره اوږد منتر باندې نه پوهېدل نو دعوامو د آسانئ او پوهې لپاره يې وويل چې الله په لا مکان کې دی ، د پښتو متل دی چې د باران نه تښتېدو او د ناوې لاندې يې شپه شوه ، دوی د ثبوت د مکان نه تښتېدل خپله د لامکان وينا سره يې مکان ثابت کړو ځکه چې لا مکان هم يو مکان دي ،

لکه امام ابن تیمیة رحمه الله نه سوال شوی دی : ( أن المعدوم حال عدمه هل هو شيئ أم لا ؟ ) ددی په جواب کې یې د څو قسمه خلکو ذکر کړی دی فرمایي : ( و منهم من یقول : لا ریب أن له (المعدوم) ثبوت في العلم و وجودا فیه فهو ( المعدوم ) باعتبار هذ الثبوت و الوجود شيئ و ذات ) . [تفسیر شیخ الاسلام – 336/ 1] .

همدا رنګه علامه زمخشري ددی آیت لاندې چې ( قالت الیهود لیست النصاری علی شيئ ) دی وایي : ( هذه مبالغة عظیمة لأن المحال و المعدوم لیطلق علیها شيئ فاذا نفي اطلاق اسم الشيئ علیه فقد بولغ في ترک الاعتداد به الی ما لیس بعده ) . [ الکشاف 1/89 ] . اکثره سلف د جهت د لفظ نه ډډه کوي ځکه چې دا لفظ د جهت په کوم نص کې ندی راغلی ، او نه د صحابؤ په اثارو کې او د تابعینو او سلف الأمة نه ندی نقل ، غایه به دا ووایو چې د علو په هکله چې کوم نصوص راغلي دي لکه استوی علی العرش ، فوقیت ، صعود ، نزول ، او في السماء ، ددی ټولو لازمي معنی جهت دی او دغه الزام معطله او جهمیه هم پر مونږ لګوي چې تاسو الله له استوی علی العرش ثابتوئ نو ددې نه مکان او حیز او جسم الله له ثابیږي دا رنګه قدر وغیره ثابیتیږي ، او د ید ، ساق ، رجل ، قدم ثابتولو نه الله لره جوارح ثابتیږي نو د جهمیه او معطله دا الزام رد کوي چې لازم د مذهب مذهب ندی لکه قاعده ده قرر العلماء بأن لازم المذهب لا یکون مذهبا بلا حجة و لا برهان . [ شرح القصیدة النونیة للهراسي 2/256 ] .

او که د دغه لزوم لپاره حجت او برهان وي دغه لزوم نه علاوه نوسلف دغه لزوم ددغه حجت او برهان د وجې نه ثابتوي نه صرف د لزوم د وجې لهذا د علو او د استوی نه مکان لازمیږي خو مونږ الله لره مکان ددغه لزوم د وجې څخه نه ثابتوو ، بلکې مونږ سره مستقل دلیل شته په ثبوت د مکان ، لکه د ابو سعید او ابو هریرة رضي الله عنهما نه په حدیث د نزول الرب ثلث اللیل الآخر کې دا لفظ وارد چې « هل من مستغیث اغیثه لا یزال ذالک مکانه حتی یطلع الفجر » . رواه ابوبکر الخطابي في الغنیة عن الکلام وأهله . و قال هذا حدیث صحیح من روایة الثقات و المعدلین .

همدا رنګه حدیث د انس رضي الله عنه د أسرا په باره کې اوږد حدیث دی هغې کې دي چې ( فعلا به الی الجبار فقال وهو مکانه یا رب خفف عنا ) [کما في البخاري 2/1120] . دا حدیث اتو محدیثونو په خپلو کتابونو کې خپلو خپلو سندونو سره ذکر کړی دی په موضوع د استدلال کې ، سرفهرست پدی کې امام بخاري ، امام مسلم ، اما ابن خزیمة ، امام ابن منده ، امام ابونعیم ، امام ابو عوانة ، امام خطابي ، او امام طبري دی ،رحمهم الله اجمعین ، او حافظ ابن حجر فرمایي : ( و من أحسن ما یقرر به کون المتواتر موجودا وجود کثرة في الأحادیث أن الکتب المشهورة المتداولة بأیدي أهل العلم شرقا و غربا المقطوعة عندهم بصحة نسبتها الی مصنفیها اذا اجتمعت علی اخراج حدیث و تعددت طرقه تعدادا تحیل العادة تواطئهم علی الکذب الی آخر الشروط أفاد العلم الیقیني بصحة نسبته الی قائله ، ومثل ذالک في الکتب المشهورة کثیر) . [ شرح نخبة الفکر 17 ] له دی نه معلوم شو چې دا حدیث حد تواتر ته رسېدلی دی خو أشاعرؤ پدې کې خپل استاذي کړې ده لکه چې حافظ ابن حجر د خطابي نه نقل کوي :( والمکان لا یضاف الی الله تعالی انما هو مکان النبي صلی الله علیه وسلم ). [ فتح الباري 13/484 ] . لیکن دا قول د خطابي وغیرؤ نقلا او عقلا درست ندی ، نقلا ځکه چې د ابوسعید او ابوهریرة روایات کې اضافت د مکان نه الله تعالی ته شوی دی نه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ، بلکې هغه روایت کې صراحتا ذکر دي چې ( لا یزال ذالک مکانه حتی یطلع الفجر في کل لیلة من الدنیا )

دی نه معلومه شوه چې دا خبره اشاعرؤ د خپل مذهب د حمایت لپاره کړې ده ، او همدا رنګه فضیل بن عیاض او امام ابن تیمیة هم وايي چې دی کې ( و هو ) ضمیر الله تعالی ته راجع دی .

عقلا ځکه درست ندی چې د نحوې عمومي قانون دی ( یرجع الضمیر الی أقرب المراجع ) دلته أقرب المراجع همدغه الجبار دی لهذا د ضمیر مرجع الله تعالی دی ، رسول الله لی الله علیه وسلم ندی . الحمدلله علی ما ألهم و علم .

أکثره سلف د جهت د لفظ نه ډډه کوي لکه چې مخکې ذکر شوه ځکه د جهت په ثبوت باندې د ضحابه کرامو نه کوم نص ندی اوارد ، او د صحابه کرامو ، تابعینو او ائمه کراو نه هم پدی باب کې کوم اثر ندی نقل شوی ، صرف دغه الفاظ د علو ، د استوی ، د صعود او د نزول نصوص لازم دي ، او د لازم مذهب نه کیدو باندې د علماؤ اقرار مونږ ذکر کړو چې هغې کې قیدا بلا حجت والا برهان وو ، چونکې ثبوت د جهت لپاره مستقل نص نشته نو أن لازم المذهب لا یکون مذهبا باندې عمل کوي ، دغه وجه ده چې امام ابن تیمیة رحمه الله هم ددې نه ډډه کوي صرف دا تفصیل کوي چې جهت په کومه معنی اخلي ځکه چې د جهت لپاره صحیح محمل هم شته او غلط هم .

او کومو علماؤ چې د جهت په ثبوت باندې قول کړی دی هغوی دې قاعدې ته کتلي دي چې ( و لازم الحق حق ) یعني دا نصوص د استوی علی العرش علو وغیره حق دي ثابت دي ، دد حق نه چې کوم شی لازمیږي هغه جهت دی او که مکان هغه هم حق دی لهذا زما خپل نظر دادی چې کوم لفظ چې د نص نه ثابت دی لکه مکان ( أین ) معیت ، هغه بلا خوف ثابتول پکار دي او جها د ( لازم الحق حق ) قاعدې لاندې ثابت کړای شي څه باک نلري .




www.ahlihadith.ml

www.facebook.com/ahlulhadithmediareal

مونږ په خپلو نیکو دعاګانو کې مه هیروئ